# ټول حقونه د اعراف پرنټنګ پرېس دي

ضابطه

د کتاب نوم : ګل او سپرلے
مصنف: اياز الله ترکزے
کمپوزنګ: سلېمان کامل
پروف ريډنګ: پير صابر شاه
چاپ: اول (۲۰۱۴ء) اکتوبر
شمېر: ۵۰۰
بيعه: ۲۰۰ روپۍ




رابطه

اياز الله ترکزے
03125945568
اعراف پرنټرز، نديم ټرېډ سنټر، محله جنګي پېښور
سلېمان کامل
03005729287
مرکه پبلي کېشنز، نهر چوک، پورے هوتے مردان

# فهرست

# سریزه

ما به دَ محله جنګي دَ معروف پبلېشر مکمل شاه دَ زلمي ډیزائنر ورور عابد سره دَ خپلې مجلې "دستار" ټائیټل جوړولو، مونږ به رنګونو سره لوبې کولې او دهٔ به راته په ځیر ځیر، په مړاو مړاو نظرونو کتل - مونږ به په ردیفونو، قافیو، رپورتاژونو، سفر نامو، داستانونو او ناولونو خبرې کولې او دهٔ به په خپل زیرك نظر دَ دې ټول منظر انځوګري کوله. هغه وخت نهٔ ما ته پته وه چې دا زلمے به یو ځل دَ پښتو دَ شعر و شعور او دَ ناول دَ مېدانونو شهسواری ته راوځي او نهٔ شاید هغهٔ دا تصویر کش په دې خبر وهٔ چې ګنې زهٔ به یو ځل دَ پښتو دَ کتاب دَ عمل په پسته، ښائسته او رنګه غېږه کښې دَ ژوند سترې ساګانې دمه کوي - مونږ دَ پښتو ښائسته دستار مسلسل درې کاله وچلولو او بیا مو وریسې پوره درې کاله دمه وکړه - دَ پښتو دَ اخبارونو او مجلو دَ ژوند ساه هم دومره لنډه تنګه وي، کهٔ یو کس ډېر زورور او دیده ور شي خو په یو سر یو ځان به څومره ټوپ څومره منډه وهي - درې کاله پس ما او زما دَ قطر دوست حاجي ګلزار خان دَ یوې نوې مجلې شروع کولو تابیا وکړه . دَ دوه درې میاشتو کاغذي کاروایۍ او کمپوزنګ دَ سترو نه پس چې ما دَ مجلې مواد ترخ کښې نیولي دَ محله جنګي دَ شاهي لختي په لوے پُل واورېدم نو دَ "ملاکنډ

کاغذ" دَ مالك علی خان دکان ته لاړم، هغهٔ سره مې څهٔ حساب کتاب کولو چې دَ شا له اړخه مې يو زلمي په اوړه لاس کښېښودهٔ "صابر شاه صاحب ستړے مهٔ شې، راځه قهوه به ما سره زما په دفتر کښې څښکې" او بيا زهٔ هغهٔ خپل ښکلي ښائسته دفتر ته راوستم ـ هغهٔ دَ خپل لوے مېز په شاه په لوړه پسته کرسۍ کښېناستهٔ ـ لاندې دراز ته ئې لاس کړهٔ ما ته ئې يو ناول راکړهٔ ـ "جي دا واخلې دا زما تازه ناول چاپ شوے دے" ما به کله کتاب ته کتل او کله دې زلمي ته ـ زما يقين نهٔ راتلو چې دا ناول دَ هغه چا دے پوره درې کالو کښې مونږ سره په ناسته کښې تولې درې خبرې هم نهٔ وې کړې ـ خاموش خاموش، چپ چپ، خو رښتيا چې "ختکے چې ختکي ته گوري نو رنګ پرېږدي" دَ دې متل په مصداق دَ علم دَ زده کړې دَ پاره صرف فلمي محفلونو کښې بې کتابه ناسته هم کافي وي او بيا دَ هغه ناول "جونګړه" ما ځان سره راوړهٔ او هغهٔ ما نه زما "معمار" ايسار کړهٔ " بس باچا جي دې نه پس به دَ معمار دَ نشر و اشاعت ذمه واري زهٔ تر سره کوم" او دا هغهٔ ځکه وئيل چې هغه دَ اعراف پرنټرز مالك وهٔ ـ دَ دې ښار يو ياد پبلشر هم وهٔ ـ دا زما دَ پاره دَ زړهٔ دَ خوښې او خوشحالۍ خبره ځکه وه چې دَ لويو لويو پريسونو په لويه تاو راتو کوڅه کښې کهٔ يو خوا هغه زما په سوچ دَ هر چا نه زيات پوهېدهٔ نو بل خوا هغه دَ سوداګرو په دې بازار کښې يوستوے ليکوال دے نو ظاهره

خبره ده چې هغهٔ به دَ "پښتو" مجلې سره دَ هر چا نه زياته خواري کوله ، او بيا هغهٔ څهٔ دَ پاسه يو کال معمار چاپ کړه او ډېره ښه ئې چاپ کړه ، ډېره په مينه ئې چاپ کړه. اوس هغه دَ معمار دَ کور سړے دے او اوس هغه دَ يو ناول نګار سره سره يو ښهٔ افسانه نګار هم دے خو زما دَ حېرت اندازه هغه وخت دَ حده نه واوړېده چې يوه ورځ هغهٔ ما ته غټه کاپي په لاس کښې کښېښوده "هن جي دا زما دَ شاعرۍ کتاب دے، دا وګوره او دا اصلاح کړه او په دې سريزه وليکه" دَ ناول ستغ سپور سفر نه پس دَ افسانې دَ ارمان دَ جهان کوتو نه سر کول او بيا دَ شعر دَ درخو دَ اشنايي کول او هغه هم صرف په دريو څلورو کالو کښې خو مشرانو رښتيا وئيلي دي چې درومې څهٔ به مومې. نن زما دَ خور ملګري اياز الله ترکزي دَ شاعرۍ کتاب چاپ کېږي او نن هغهٔ دَ خپل مصروف ژوند سره په هله هله ساه ګانو دَ شاعرانو دَ قطار په سرکښې روان دے. صاحب کتاب شاعر او ما ته پته ده چې هغه مستقل مزاجه زلمے دے. دا دَ هغهٔ وړومبے کتاب دے. اوس به هغه دا مزل وهي او دَ پښتو دَ څنې او وربل دَ سفر به دَ هر چا نه په لويه بازۍ لويه ادا لوے تاوان ګټي.

يادونه دې زما دَ زړهٔ بې تاب نه کله وځي
خوشبو ځي دَ ګلاب نه، دَ ګلاب نه کله وځي
زړګيه قيامتونه ئې نظر کښې لا اوس هم شته

مستي ئې دَ دوو سترګو دَ شباب نه کله وځي
زما دَ پښتونخوا دَ درد احساس به درته وشي
ایازه رواي خېل چې دَ پنجاب نه کله وځي

زار دَ دغه ګل دَ پاڼې پاڼې شم
تا چې خپلو زلفو کښې بنلے دے
دا چې په ملك ملك دې مشهور په ننګ
دا زمونږ دَ خاورو ختو کلے دے

او دَ ښاغلي ایاز په "ګل سپرلي" کښې دَ دې نه هم ښهٔ ښهٔ شعرونه شته۔ ځنې شعرونه ئې کمزوري هم دي خو دلته دا کتل پکار دي چې دَ ایاز دَ شعر سفر څومره دے۔صرف څلور پینځهٔ کاله ...... او په څلورو پینځو کالو کښې دومره تیز او حسن خېز سفر وهلي دَ لوېې لار او ډاډ خبره ده۔ زما یقین دے چې ځوان زلمے ایاز ترکزے به راتلونکي وخت کښې دَ خپلې سردارۍ او سالارۍ ژبې پښتو دَ پاره دَ دې نه هم لوے لوے کارونه وکړي۔

سید صابر شاه صابر
تاکال، پېښور

# د اياز الله ترکزي شاعري

ښاغلے اياز الله د ادب په مېدان کښې نو وارد نهٔ دے .له دې اګاهو ئې د "جونګړه" په نوم يو ناول هم پښتو ادب ته ډالۍ کړے دے چې د لوستونکيو له خوا ئې پذيرايي شوې ده . اوس دا دے هغه د شاعرۍ مجموعه هم چاپ کوي.هر څو کهٔ هغه هلك دے او په دې عمر کښې هر کار ته د بنده ډېره تلوار وي چې زر زر دې هر څهٔ سر ته ورسوي .دغه تلوسه بيا بنده دې ته نهٔ سموي چې کوهے دے ګړنګ .زما په خيال هغه د خپل کاروباري مصروفيت په وجه ځان ته د مطالعې يو مربوط نظام نهٔ دے برابر کړے او شايد د روزګار دغه غميزې چرته ادبي محفل ته هم کم کم په تلو اماده کړے دے خو شاعري ئې په تسلسل سره کړې ده او کوي ئې چې اوس ئې دا ده په کتابي شکل کښې راغونډه کړې ده.

د ښاغلي اياز الله په دې مجموعه کښې د غزلونو نه علاوه نظمونه هم شامل دي .د هغهٔ شاعري لکه د هغهٔ په شان نرمه نازکه ده او چې څنګه هغه په عام ژوند کښې قلار قلار دے دغه شان ئې شاعري هم بې ضرره او قلاره قلاره ده خو د شاعرۍ د مطالعې نه پس ئې سړے په دې نتيجه رسي چې د هغهٔ د دغه قلار شخصيت په شا يو ډېر ناقلاره زړهٔ هم کار فرما

دے چې د دهٔ حسي صلاحيتونه ئې را پارولي دي او دهٔ د دغه راپار شويو صلاحيتونو د اظهار د پاره د شعر وئيلو لاره غوره کړې ده .دا لاره کهٔ هر څو اسانه نهٔ ده خو خپله خبره بل د رسولو، د محبوب ظلم او زياتے ښکارکولو، د جبر خلاف احتجاج کولو د پاره يوه لنډه لاره ضرور ده .په دې لاره د تګ د پاره ځان سره څهٔ وړل پکار دي ؟ دا سوال جواب ته اړتيا لري. دا سوال کهٔ يو ډېر مهم حېثيت لري خو د ښاغلي اياز الله ترکزي په حواله په انفرادي توګه هم نظر انداز کېدے نهٔ شي .د ادب د لارې سفر د پوهې يوه بې پناه پنګه د توښې په توګه ځان سره وړل او دغه توښه په لوے هنر او کمال تر منزله رسول هم د تجربه غواړي او هم حوصله .هله کېدے شي چې دا کاروان سرے په خير او عافيت سره په منزل ولګوي.

د بعضې محترمو دانشورانو دا حکم نظر انداز کول هم ګران دي چې د کتاب په چاپ کښې تلوار نهٔ ده پکار خو دې خبرې سره به څهٔ کوو چې زلمي له اختياره منع نهٔ دي .اياز الله هم زلمے دے ، وينه ئې توده ده او چې ورسره شاعر هم دے نو بيا خو به خبره ډېره خطرناکه وي چې د هغهٔ په لار کښې د خنډانو پېدا کولو کوشش کوو .هر څهٔ چې دي هغهٔ مجموعه مرتب کړې ده او د پښتو ادب مئيانانو ته ئې ډالۍ کول غواړي.

نو مصلحت په دې کښې دے چې کۀ په لار ورسره تلو ته متفق نۀ يو چې لار ورته هم ونۀ نيسو ۔ ځکه چې وخت د ټولو نه لوے استاد دے او ډېرو لويو لويو استاذانو په يوه موقع خپل د وړومبي دور کتابونه پټ کړي يا له مينځه وړي دي۔

ښاغلي اياز الله ته د عمر يوه اوږده موده په سر پرته ده۔ بايد چې هغه لکه د ژوند شاعري هم سنجيده واخلي او فقط د وخت تيرې د پاره ئې يوه ذريعه ونۀ ګڼي ۔زۀ ورته خوش بينه يم چې کېږي به هم دغسې ۔ځکه چې هغۀ کښې هغه ټولې خوبۍ په نظر راځي کومې چې په يو ښۀ شاعر او اديب کښې پکار دي۔

هسې خو ښاغلے اياز الله ترکزے روزګار هم د کتابونو چاپولو کوي، نو چې زندګي ئې کتابونو سره ده بيا ورته څۀ ګران دي چې د دغه کتابونو نه استفاده هم وکړي او پوهه ترې نه واخلي ۔هم دغه پوهه به ئې د راروان ژوند د پاره بل مثال وي او د دغه مثال په رڼا به د خود تنقيدۍ د عمل په ائينه کښې د خپل قد جائزه واخلي او د پښتو ادب نظم او نثر په دواړو حوالو به ځان له يو مستقل ځاے وټاکي۔ د دۀ په حقله زما د امېد اندازه د يقين تر حده قوي او توانا ده۔زۀ د خپلې دې دعوې د ثبوت د پاره د دې مجموعې نه د داخلي شهادت په توګه ډېر شعرونه پېش کولے شم خو دې سره به ئې د کتاب د

مجموعي تاثر ستر مات شي، نو ګران لوستونکي دې د کتاب لوستو نه پس خپله يوه رايې قائمه کړي او زما دعوىٰ دې ورسره په تله کښې واچوي. زهٔ دېر په وثوق سره وئيلے شم چې قدرمن لوستونکي به هم د ښاغلي اياز الله ترکزي په حقله دا خواهش ضرور ولري چې کهٔ د مطالعې د پير نه ئې بيعت وکړهٔ او ورسره ئې د مشاهدې حس هم بېدار وساتهٔ نو د شعر وئيلو هنر او تجربه به ورته د پښتو په شعري ادب کښې نوې لارې پرانزي چې هم به ساندې سندرې کړي او هم به د مينې د غنا د نغمې سُر زمزمه کړي، هم به محبت ته افاقي قدر وبخښي او هم به پښتو ته خوندور اثار پېرزوې کړي، هم به شعر له ژبه ورکړي او هم به جانان د لفظونو په رنګونو ښکلے کړي، هم به اظهار مجسم کړي او هم به دلدار وستايي، هم به د امن ترانې ووايي او هم به د وروري نغمې، هم به انسان ته د خپل عظمت ورکه خزانه په ګوته کړي او هم به د دغه ورکې خزانې د ساتنې هنر، هم به د ژوند د سپرلي نه د رنګ او رڼا خوشبو کشيد کړي او هم به دغه خوشبو تصوير کړي. هم به د پښتو افاقي قدرونو له ژبه ورکړي او هم به دغه ژبې له د معنې خوارهٔ، هم به د ځان پېژندنې د مسلك قبا واغوندي او هم به د قام پېژندې د اعجاز عسا په لاس کړي، هم به د سقراط جنون په جانانه ادا ياد کړي

او به هم د عقل د پېغمبر په دعا امين ووايي، هم به پښتو خوږه کړي او هم به پښتونولي نغمه کړي او د دې مشق سخن په نتيجه کښې به دا د اياز الله ترکزي يو نوے جنم وي چې مونږ به ورته په استقبال کښې خپلې سترګې په لويه لار کښې غوړولې ولاړ يو.

ښاغلے اياز الله هوښيار بنده دے، هغهٔ له دومره اشاره هم ډېره ده ځکه چې هغه د لوړ قائل نهٔ دے، د قلم په ملګرتيا کښې هرې قربانۍ ته غاړه ږدي او د هرې ښې مشورې منلو د پاره لاس په نامه تيار ولاړ دے. د هغهٔ د دې کتاب د چاپ نه پس تر بل کتاب چاپولو پورې به هغه يو نوے اياز الله ترکزے وي او دغه نوے والے به ئې د پښتو د پاره د خېر باعث وي او کهٔ خدائے کړے او خېر وي نو پښتو به د هغهٔ د پاره د خېر ذريعه وي. هم د دې خواهش تر مخه ئې د ژوند وربشه ډېره غواړو.

په ډېره مينه

سلېمان کامل/مردان

۳۱مه مئي ۲۰۱۴ء

## "لاس کښې مې قلم دے یاره تا باندې غزل لیکم"

شاعران کوم چې په دوه قسمه دي نو یو ته فطري شاعران وایي او بل روایتي شاعران دي. کوم شاعرانو چې د شاعرۍ صلاحیتونه د ځان سره راوړے وي یعني الله تعالیٰ په تحفه کښې ودیعت کړے وي نو دا قسم شاعران چې کله شعرلیکي نو د دوي شاعري د بناوټ او تصنع څخه پاکه او فطري وي او د داسې شاعرانو کلامونه د دوي د اخلاص په بنیاد تخلیق کېږي او د دغه اخلاص په وجه ئې کلام دلپذیر او دلپسند وي.

دوېم هغه شاعران چې روایتي شاعران ورته وایي نو د داسې شاعرانو خپل شعري صلاحیتونه نهٔ وي بلکې زاړهٔ خیالات په زوړو قالبونو کښې پېش کوي او په کلام کښې ئې نوي خیالات د نشت برابر وي. د داسې شاعرانو اندازِ بیان زوړ او جذبات او احساسات ئې ساړهٔ وي خو شاعري د هغه جذباتو نوم دے چې شاعر ورته د موزون او پُرتاثیره الفاظو جامه ور اغوسته وي. زلمے شاعر ایاز الله ترکزے په یو شعر کښې وایي:

ځان راته شاعر نهٔ ښکاري هر څهٔ په توکل ليکم
لاس کښېږ مې قلم دے ياره تا باندې غزل ليکم

اوس نو شاعري کول يا شعرونه وئيل جدا خپل خوند او مزه لري خو د پښتانهٔ طبعيت، عادت او فطرت کهٔ په غور مطالعه شي نو دا خبره به په ښهٔ شان په ډاګه شي چې د پښتون ذهن او لکه دواړه شاعران دي ـ د يو مستشرق خبره ده چې پښتانهٔ فطرتاً شاعران دي او دغه وجه ده چې د اياز الله ترکزي هم شاعري ډېره خوښه ده او غواړي چې د شاعرۍ خپل يو کتاب وليکي : هغه وايي ،

طنز خو بـه کېږي خـامخا دربـاندې
عشق کښېږ د دې نه څهٔ ګزران نشته

او يو بل شعر کښې وايي:

سترګو دې د زړهٔ حالونه وئيل
ما ته ئې ټول پټ رازونه وئيل

خپل زړهٔ ته د تخاطب په حال کښې ګويا کېږي او داسې وايي
چې:

اے نادان زړګيه
ژړېدلے ولې
زهٔ ستا د درد نه بې خبره نهٔ يم

اوس نو کهٔ مونږ د اياز الله د شعري شغف په حقله څهٔ هم
وايو نو دومره چې دا زلمے شاعر ډېر د زړهٔ د اخلاصه د شاعرۍ
طرف ته ګامونه اخستل غواړي او کهٔ د موصوف شعري تکنيك
لا په خړپوسو دے خو بيا هم ئې جذبات او احساسات
لوستونکيو ته د سوچ موقع ورکولے شي، لکه دې شعر کښې
چې وايي:

دا څنګه ژوندون شهٔ چې پروا د يو بل نهٔ ساتو
په خفګان کښې ډك د وفا منتونه لړ راياد کړه

او يا لکه دا شعر چې هغه وايي:

زړهٔ مې غواړي چې ځان ته دې نزدې کړم
د جدايۍ دغه زنځير د مينځه پرې کړم

اوس نو چې د اياز الله ترکزي پورتني شعرونه ته کهٔ په غور وکتے شي نو معلومه به شي چې د تاثير په لحاظ دا شعرونه چې په کومه زمره کښې راځي هغه لوستونکي ته د سوچ او غور ابلاغ دے او د ادب عالمان وايي چې شعر د تاثيرپه لحاظ کېدے شي يا خو به مرقص وي چې اورېدونکي له ډېر خوند ورکړي او په ګډا شر شي او يا به مطرب وي چې اورېدونکي ئې په اورېدو نهٔ مړېږي يا به مقبول وي چې په اورېدو باندې ئې د ذوقِ سليم خاوند دومره ووايي چې ښهٔ دے او يا به مسموع وي چې هغه د اورېدو جوګه او قابل برداشت وي يعني ډېر د معيار نه غورځېدلے نهٔ وي او بعضې شعر ته متروك وايي او هغه د رد کولو قابل وي ځکه چې څهٔ خوبي هم نهٔ لري خو د شعر حسن پېژندګلو په دې کېږي چې اورېدونکے يا لوستونکے مطمئن ځنې شي او طبعيت ئې پرې باندې ښهٔ شي

او دا چې الفاظ او معنیٰ دواړه ئې ښهٔ ښکلے وي ـ دغه عام محاورې چې استعمالوي اياز الله ترکزے وايي:

"تا وئیلے ماوئیلے" په بلا وولئ
خطاګانې يو بل ته معاف کول غواړي
تر څو به د يو بل په وينو رنګ ګرځو
دا رسم او رواج اوس بدلول غواړي

د موصوف د شخصيت اندازه مونږ د هغهٔ د دې بل يو عام فهم شعر نه لګولے شو چې چرته هغه د خپل ځان په حقله وايي:

څهٔ چې مې په زړهٔ وي تل ئې په خلهٔ راولم
د دروغو غرونه جوړول زما نه نهٔ کېږي

بل ځاے وايي:

ترخې خبرې تل بدې ته وځي
داسې بې توکه او بې تول ماسره پرېږدئ

او په دې شعر کښې هغه وايي:

سـوچونـه او فــکرونه چې دې سم وي
نو دَ خلې وتې لفظونه به دې سم وي

بزرگان فرمايي چې د هر انسان بنيادي ضرورت فکر دے او چې فکر درست وي نو يقيني ده چې عمل به هم درست وي او د صحيح اعمالو اثرات به هم درست او صحيح وي ، موصوف وايي:

خواه کهٔ امير وي کهٔ غريب د خاکسارو خلقو يار يم
ايـازه! دا وينـا پـه رښتيـا او صـداقـت کومه

د اياز الله ترکزي په شاعرۍ د اولسي ژوند رنګونه غالب او دغه حجره او وړوکوالے نظم ئې هغه خاکه وړاندې کوي کومه حجره چې د پښتنو په اولسي ژوند کښې اهم کردار لري۔ د موصوف دا کلام د هغهٔ دَ چاپېرچل ترجماني پکښې ډېره په ښهٔ طريقه شوې ده ، (نظم "وړکوالے" به ئې په کتاب کښې ولولئ)

اخر کښې مونږ د اياز الله ترکزي څخه هيله لرو چې په راتلونکي وختونو کښې به د عصري تقاضو مطابق بيا بيا د خپل قلم وسيله د ژبې او ادب د پرمختګ د پاره د ملك او قوم د ښېګړې په کار راولي۔

ممتاز حسن دولت زے



# خپلې خبرې

دَ هر چا ژوند دَ مختلفو حادثو او جدوجهد نه ډك وي او دا هر څۀ دَ هر انسان دَ يو بل نه جدا جدا وي او هم دغه شان زما ژوند دَ ډېرو کوششونو او حادثو نه ډك دے. ما په دې کتاب کښې ډېر په ساده او اسانه ژبه خپل جذبات او احساسات ښکاره کړي دي. کېدے شي چې زما دا کوشش دَ شاعرۍ په اصولو پوره نۀ وي خو ما خپل کوشش کړے دے. ځکه چې زما شعر زما دَ درد درد ژوند زخمي زخمي تصوير دے. زما دنيا څۀ عجيبه غوندې ده. دَ هنګامو، حادثو، وسوسو او دَ ژوند دَ درد اميزه جنګونو نه ډکه ده. زما دَ امېدونو سپرلي سوزېدلي دي. په دې دنيا کښې يو سېلګري سېلاني ته نۀ خو دَ شفق حسن ورې رنګينۍ په نظر راتلے شي او نۀ دَ ګلونو معطرې وږمې، دلته ګېر چاپېره سوزېدلي کلۍ دي ، ايره شوي امېدونه دي، لمبه شوي احساسات، جذبات او کېفيات دي او هم ځکه ما سره زما په دې شاړه او ويجاړه دنيا کښې تر ډېره ساعته څوك دَ امېدونو ملګرتيا نۀ کوي نو ځکه زۀ يوازې يك تنها يم خو پته نشته چې چې زۀ په دې خپله درد درد ايره ايره او صحرا صحرا دنيا کښې

ولې خوشحاله او پرامېده يم. پته نشته چې زهٔ ولې دَ سپرلي دَ رنګونو او بهارونو نه بې پروا يم. دَ دې وجه به شايد چې دا هم وي چې زهٔ اوس دَ خپلو دردونو دې جهان کښې دومره بلد شوم چې دَ نورو دَ سکون په جهان کښې هم بې قراري محسوسوم.

نو چې زما دَ زړهٔ دنيا ګډه وډه ده، خواره زاره، ازغنه ازغنه او درد درد ده نو ظاهره خبره ده چې زما شاعري به هم دَ داسې دنيا دَ محسوساتو په باره کښې وي. ما دا شاعري دَ خپل زړهٔ دَ ارمان دَ انځور دَ جواز دَ پاره کړې ده. دَ خپل زړهٔ دَ کفياتو دَ اظهار دَ پاره او دَ خپلو احساساتو دَ ترجمانۍ دَ پاره.

دې شاعرۍ کښې به دَ شعريت تومنه هم کمه وي او معنیٰ، مقصد او ښائست به پکښې هم پيکه پيکه وي ولې بيا هم دا زما شعرونه دي. زما بچي دي او خپل بچي په هر چا ګران وي او په ما خو ځکه ګران دي چې ما سره ئې په شپو شپو شوګيرې کړي دي. زما دَ غمونو دَ دردونو دَ وختونو ملګري دي. زهٔ ئې چې اوس هم بيا بيا ګورم نو زړهٔ ته مې پرې سکون ملاوېږي ځکه ئې دَ کتاب دَ محمل په غېږ کښې محفوظوم.

دا کتاب ستاسو تر لاسونو در رسولو او مرسته کولو کښې اول دَ خورِ دوست او دَ درځنونو کتابو مصنف سید صابر شاه صابر مننه کوم چې ما ته ئې همېشه زما دَ نثر او نظم دَ رایې په سفر کې درنې درنې مشورې راکړي دي او بل دَ ملګري سلېمان کامل چې محض دَ پښتو ژبې دَ ودې په خاطر ئې ګام په ګام زما حوصله افزایي کړې ده۔ ما له ئې داد او ډاډ راکړے دے او دَ دې کتاب په چاپ کولو کښې زما نه هم زیاته دلچسپي اخستې ده۔ بیا دَ خورِ ملګري ممتاز حسن دولت زي مننه کوم چې په خپلو پښتنو مشورو ئې زما ارادې وچتې کړے دي او ما ته ئې دا ورانه ماشوره ډېره اسانه کړې ده۔

په مینه او مننه

ایاز الله ترکزے

***

# دعا

اے الله

جدا نهٔ کړې هغه زمانه

دا تيک ده

چې جدايي کښې څوك مړ کيږي نه

بيا هم

د جدايي ژوند خو څهٔ ژوند نهٔ وي

دوزخ دوزخ

ناسور ناسور

تنور تنور وي

***

## غزل

سپرلي دي دَ دي ستر ګو دَ رنګونو نه شرميږي
موسکے موسکے شفق دي اننګو ته هوسيږي

کابل کۀ پېښور دے کۀ تيرا دے او کۀ سوات دے
پښتون پکښې دردېږي او پښتون پکښې قتلېږي

دا بيا دَ چا دَ مستو ښکلو ستر ګو فکر يوړم
دا بيا مې ليونے زړګے دَ چا کلي ته کېږي

يو داسې محبوبا چې په ما زلفې راخورې کړي
بل هيڅ نۀ کوي کار زما نه هر وختې تاوېږي

چې ناسته پرېشانه وي سوچونه وسوسې کړي
په ما چې د راتلو کورته ماښام ناوخته کېږي

چې ګرځي ورکه ورکه هم ناسازه پرېشانه
ناجوړه چې شم کله بيا په ما باندې دردېږي

ايازه دَ سپرلو سندرې ښنګه زمزمه کړم
په وينې وينې ښار کښې مې له ژونده ويره کېږي

**

# غزل

یادونه دې زما دَ زړهٔ بې تاب نه کله وځي
خوشبو ځي دَ ګلاب نه، دَ ګلاب نه کله وځي

نن شپه راته تهٔ نهٔ ښکارې د ستورو انجمن کښې
چې غوارمه کرنګار مې د رباب نه کله وځي

په تا باندې فدا يمه دا بار بار درته وايم
اقرار وي مختصر خو د جناب نه کله وځي

ستا مينه ده شامله چې زما د تن په خون کښې
سرور چې ورته وايي د شراب نه کله وځي

زړګيه قيامتونه ئې نظر کښې لا اوس هم شته
مستي ئې دَ دوو سترګو دَ شباب نه کله وځي

زما دَ پښتونخوا دَ درد احساس به ورته وشي
ايازه راوي خېل چې دَ پنجاب نه کله وځي

**

# غزل

تیارهٔ دَ ژوند شوه په رڼا بدله
ستا په راتلو مې شوه دنیا بدله

هغه دَ مینې روایات ئې ورك كړل
لاړه شوه ټوله پښتونخوا بدله

رېباره نن داسې موسكے ښكارېدې
رېباره نن مې ده شها بدله

تا مې دَ امن زندګي لمبه كړه
تا مې دنیا كړه رهمنا بدله

ایازه سرې سترګې به څو ګرځېږې
بس په خندا دې كړه ژړا بدله

**

# غزل

زما لېونے زړهٔ دے له تا نه نهٔ صبرېږي
له تا نه نهٔ صبرېږي جانانه نهٔ صبرېږي

دې خپل لېوني زړهٔ سره څهٔ وکړم ستا کوڅه کښې
دَ ښکلو حسن ورو شاخوبانه نهٔ صبرېږي

دا تهٔ چې ورته وايې ستغې سپورې تا نه ځار شم
دا تول په تا مئين دي په اسانه نهٔ صبرېږي

ايازه دا وطن کهٔ اوس هر څو ګلې ګولۍ شهٔ
خو بيا مې هم زړګے دَ پښتونخوا نه نهٔ صبرېږي

**

# غزل

زما په زړهٔ د غم داغونه دي د شمار نه وتي
زړونه مئين وي همېشه صبر و قرار نه وتي

تازه زخمونه دي په زړهٔ کښې لګېدلي زما
دا تېزابي غشي د شنو سترګو د يار نه وتي

د رقيبانو په طنزونو زهٔ سوزېږم کله
دي اندامونه مې د عشق د انګار نه وتي

هغوي زېلي دومره دومره دَ خزان بادونو
هغه ملګري دي ببخي اوس دَ بهار نهٔ وتي

اشنا مې نهٔ پوهېږي وښايئ څهٔ لاره ماته
ورته مې کړي منتونه دي د شمار نه وتي

د عشق غمونه هم هغو ته وي معلوم ايازه
چې په ياری کښې وي د بخت د اقتداره نه وتي

**

## غزل

جوړه چې ګرځېدلے او دنیا راته کتلے
پـه میـنه ځارېدلے او دنیا راته کتلے

سپوږمۍ ته د کتلو ننداره کښې دواړه ورك وې
یو بل ته مو خندلے او دنیا راته کتلے

څۀ لویه خوشحالي مو مېشته کړے وے په زړۀ کښې
بیلتون مو سوزېدلے او دنیا راته کتلے

ستا سترګې دواړه ډکې شي او تۀ شې غریو نیولے
تیندك چې مې خوړلے او دنیا راته کتلے

ایاز به هم ایاز وي بدل به چرې نۀ شي
چې تل ئې تۀ لیدلے او دنیا راته کتلے

***

# غزل

پرېږدم درته دا کلے مینه وړمه ځان سره
دردونه اسویلي به ګرځومه ځان سره

خوشحاله دښمنان دي ګنې ئې خپله ګټه
د کله نه چې تا نهٔ ګرځومه ځان سره

دا تورې تورې شپې دا شوګیرې او ستا یادونه
ډېوې دَ خپلو اوښکو بلومه ځان سره

سبا چې جانان راشي زهٔ به څهٔ څهٔ ورته وایم
هم دا کله کرم کله رېبمه ځان سره

بس پرېږده چې ایازه لېونے شم سودایي شم
یو څو ښکلي دَ دې کلي ګنمه ځان سره

**

## غزل

زما د زړهٔ په تلوسو کښې تهٔ يې
ګلابه پټ کهٔ په پردو کښې تهٔ يې

اوس ملاقات نهٔ کېږي ستا او زما
د سمندر د تل سيپو کښې تهٔ يې

ماشوم زړګے مې نور ونهٔ ژړوي
زما د ژوند ټولو نغمو کښې تهٔ يې

راغے په تا باندې بهار د ځوانۍ
لکه غوټۍ هسې سپږدو کښې تهٔ يې

اياز مئين په پلوشو دې يمه
لکه سپوږمۍ په تورو شپو کښې تهٔ يې

**

# غزل

زهٔ تا سره څومره مينه څومره محبت کوم
هره ورځ طواف ستا دَ بلې او دَ محلت کوم

زړهٔمې درله درکړهٔ مال و زر څهٔ وي ښائسته اشنا
سرمې درنه هم قربان شه دومره سخاوت کوم

لاړهٔ عمر تېر شولو خو بيا هم منع نهٔ شومه
څم راځم ګودر ته اوس هم دغه يو عادت کوم

پوهه يم چې ښهٔ ډېر ګناه ګار او خطا کار يمه
تهٔ رحمان رحيم يې درنه طمع دَ جنت کوم

دلته دَ غريب په غريبۍ پورې خندا کېږي
دلته دې نظام نه اياز ځکه بغاوت کوم

**

## غزل

راشه يو ځل بيا په دې لاړ لاليه
زهٔ دې كومه انتظار لاليه

اوس په ژوندون چې راله را نهٔ شي نو
بيا مې را نهٔ شې په مزار لاليه

خار دې له سرو شونډو له دنګې ونې
زما ګلاب زما چينار لاليه

تا سره خوند كوي ګلاب په لاس كښې
ما سره غېږه كښې ستار لاليه

دا زهٔ اياز تركزے نيم پاګل شم
چې شي موسم دَ نوبهار لاليه

**

# غزل

دَ ډېرې خوشحالۍ نه نن دَ ځان سره خندېږم
جانان به مې راځي ورته به گل ښنو کښې غوړېږم

دا نن مازيګر څومره دَ سُرود مخمور دے
دَ سرو گلو گلشن کښې دَ شها سره گرځېږم

په دې باندې خو فخر کړم په دې باندې خو وياړم
چې ستا دَ چم مالت دَ لهونو په نوم يادېږم

اياز بس هم دغه يو ارمان مې دے په زړهٔ کښې
چې کله به په خاوره دَ "يثرب" کښې ولوغړېږم

***

## غزل

زما ښائسته جانانه لږ راشه په دې لور
زما دَ زړهٔ درمانه لږ راشه په دې لور

بې ستا نه مې ژوند ګران دے حسینه، نازنینه
په ما شه مهربانه لږ راشه په دې لور

ای ښکلیه حسن باره، زما دَ زړهٔ قراره
دا ژوند مې کړه شادمانه لږ راشه په دې لور

دا لارې په خندا کړه، مست مست کړه ګودرونه
دَ ښکلو شاه خوبانه لږ راشه په دې لور

ایاز دې لارې ګورې، لږ راشه په دې لورې
دا کلے کړه روښانه لږ راشه په دې لور

**

# غزل

ستا دَ چم خاورې ، ګردونه مې يادېږي
ستا کوڅې، ستا دېوالونه مې يادېږي

دَ دې ښار دوړژن ماحول کښې بلا تنګ يم
دَ خپل کلي ګودرونه مې يادېږي

ستا ورې ورې خوږې خوږې خبرې
اف دَ تېر عمر وختونه مې يادېږي

سر دې وخوري دا دَ ښار رنګ او رنړا لا
دَ کچه کلي کورونه مې يادېږی

دَ اياز پکښې دَ خوږ زړګي سکون دے
ښار چې ستا شي ځمه غرونه مې يادېږي

**

# غزل

خدا ے زده چې بیا به څومره مئینان لاندې قتلېږي
په بام باندې ولاړه ده نرۍ نرۍ خندېږي

دَ تورې لوپټې دَ مقېشونو نه دي ځار شم
دا زلفې دي په شا کړه توره شپه نهٔ سبا کېږي

دا ښار دَ پېښور هم لاړهٔ ښار ناپرسان شهٔ
هغوي پکښې لويان شول چې په هيڅ هم نهٔ پوهېږي

اوس هغه دَ "بارې" او دَ چينو "تېراه" دوزخ د ے
مرغۍ پکښې هم ځاځکي ځاځکي تندې نه ورتېږي

سپرلے د ے کهٔ سپوږمۍ ده، کهٔ شفق د ے کهٔ اياز د ے
ستا حُسن ستا ځوانۍ ته ستا ښائست ته هوسېږي

**

# غزل

ګلاب ګلاب رېدے رېدے بهار راله پکار دے
ښهٔ ښکلے یو جانان نګار راله پکار دے

دَ ګردې پښتونخوا موسم کښې سوز دَ ساندو ګډ دے
سپرلے دې دلته راشي کندهار راله پکار دے

زما دَ باغ ګلونه دَ بل غاړه کښې ځانګېږي*
زما، زما په خاوره بس اختیار راله پکار دے

دا پولې سوېدلې غواړي نوي بهارونه
یو ښکلے رهمنا ښکلے ماليار راله پکار دے

ایازه دَ "صابر او دَ کامل"[1] په بدرګه کښې
سفر دَ پښتونخوا دَ غزلزار راله پکار دے

۱۔سید صابر شاه صابر، سلېمان کامل

# غزل

توررو توررو سترګو دې رنځور کړمه
حُسن شغله باره دې چور چور کړمه

عشق دې دَ ښې توبښې نه وويستم
مينې دې ملنګ کړمه مجبور کړمه

خيال دې دَ خوررو زلفو اسانه نهٔ دے
زهٔ خو ئې په دار لکه منصور کړمه

نوره مې دَ بغض لمن ځيرې کړه
نوره وروړلې دَ خپل تربور کړمه

نن ئې وې ايازه تهوله ستا يمه
راشه چې دَ خپل سر دې سندور کړمه

**

# غزل

شپخه نن ځنګه ته راغلے مېخانې ته
د ساقي لاس کښې چې ګورې پېمانې ته
داسې ښکاري شین خالۍ درته ګډېږي
چې خوشحاله داسې ښکارې تورې شپې ته
د ایمان د ګډوډۍ خبرونه غواړه
ټینګ به نۀ شې په قیامت کښې جرمانې ته
ډېر په خیال ځه کۀ دې ډکه پیاله وڅښه
ځان به پاك ساتې واعظه زمانې ته
خدایه خبر مې کړې دَ پلار نیکۀ دستار ته
خدایه خبر مې کړې دَ مور او خور برقعې ته
هسې نه دَ ډېره شرمه کچه نۀ شي
تۀ چې داسې برند برند ګورې ائینې ته
اے ایازه تۀ یواځې داسې نۀ یې
داسې ډېر راځي په پته مېکدې ته
**

## غزل

ستا دَ غم خوارۀ دردونه راسره دي
کۀ تۀ نۀ یې ستا یادونه راسره دي

ما هم تا له دي راوړي مړاوي کېږي
راشه واخله څو ګلونه راسره دي

اوس دَ زور او شور نه ډېر یم پرېوتلے
په دې څۀ کۀ تاریخونه راسره دي

څو ګوتمې څو اوچې پاڼې ، رومالونه
ستا دَ مینې یادګارونه راسره دي

زړ به نۀ لرمه کور کښې خو ایازه
ښکلي ښکلي کتابونه راسره دي

**

# غزل

خفه ټوله دنیا وي جانان چې مې خفه شي
په مخ ئې خورې زلفې وي د ورځې توره شپه شي

وي هسې بې قراره او ګمنامه شانې ګرځي
چې زهٔ ئې نامه واخلمه بیا جوړه تماشه شي

چې نهٔ وي راسره اظهار کوم په چغو چغو
چې راشي مخامخ نو دَ وېنا جذبه سړه شي

یو ځل ئې دیدن وکړئ په نظر زما د سترګو
هله به روغه خلقه زما مینه درښکاره شي

زهٔ ټول به کړمه هېر د بېلتانهٔ هغهٔ وختونه
یو ځل کهٔ د ایاز جانان خوږه نغمه شي

**

# غزل

د مینې ابتدا کوم له تا جانانه
دے زړهٔ راښونکے حسن ستا جانانه

د زړهٔ نه معصومه او طبیعت نه یې ساده
مخ د سپوږمۍ په شان ځلیږي ستا جانانه

په لاره ځې او کوې عجیبه عجیبه نخرې
زهٔ دې کړم په ځان باندې شیدا جانانه

نور مې تیارو کښې ژوندون ګران دے
زلفې لرې کړه له مخه چې شي رڼا جانانه

زهٔ ایاز بې وسه پاتې شم هلته بیا
خندا خندا کښې چې زړهٔ رانه یوسې په خندا جانانه

**

# غزل

را به شي ملاو به شي کله خو په لار يوه ورځ
ناست ومه يواځې وم په انتظار يوه ورځ

وخت مې تېرېږي په څۀ حال کښې تا ته څۀ پته ده
تا پسې چې ګرځېدم د لېونيانو په معيار يوه ورځ

زۀ په تا مئين يم يقين به دې بيا راشي
د عشق انتها به وويني په دار يوه ورځ

ناګهانه مې رامنډه کړه کوڅې ته
ستا د بنګړو چې مې واورېدۀ شړنګار يوه ورځ

هم هغه راپورې خاندي چا ته چې د زړۀ حالونه وايم
خبر دے وبه کړي يقين ايازه ستا په ګفتار يوه ورځ

**

# غزل

هغه راغلے زمونږ کور ته په بانه بانه
ځان ګرانوي خپلې ترور ته په بانه بانه

اے زما ګوډی لږ ئې وګوره په کور کښې
کوي سوالونه کشرې خور ته په بانه بانه

د چائېو پتې خلاصې دي ترور نه به ئې راوړم
منت کوي لګيا ده مور ته په بانه بانه

په بلى راوخېژه چې زما خبرې واورې
خوروي جامې ګورې زمونږ کور ته په بانه بانه

ترور مې وئيلے اوږهٔ راله لامدهٔ که ځکه شو ناوخته
ځان خلاصوي لګيا ده ورور ته په بانه بانه

**

## غزل

ډېر زيات دي ظالمان ستا د کلي خلق
مړهٔ به مو کړي تهمتيان ستا د کلي خلق

مهٔ ورکوه ازمېښت ته زما مينه اے جانانه
درباندې تنگ به کړي زمکه او اسمان ستا د کلي خلق

وئې کړل گزارونه په رنگ رنگ زمونږ په مينه
اوس جوړوې نوي غشي نوے کمان ستا د کلي خلق

په هر رنگ او په هر ډول کهٔ په مونږ وکړي دوي ظلمونه
شرمنده به تل وي په جهان ستا د کلي خلق

محبت کهٔ گناه ده بيا خو دې وکړله ايازه
سزا کهٔ راکړي خدايان ستا د کلي خلق
**

# غزل

ستا نه بغېر جانانه دنیا توله پیکه پیکه ده
زما د ژوند یاره منشا توله پیکه پیکه ده

خوب خو زما د سترګو نه خفه تلے دے
سپوږمۍ خلهٔ هم ستا توله پیکه پیکه ده

ما خپل ژوند ستا مینې ته وقف کړلو
ولې زما فېصلې باندې دنیا توله پیکه پیکه ده

اے ایازه غلے او صابر په هر حـال کښې اوسه
په حقیقت کښې هم دنیا توله پیکه پیکه ده

**

# پښتونه وروره

ولې دې پرېښې ده پښتو زما پښتونه وروره
زما پښتونه وروره
زما پښتونه وروره

انګرېزان چې ورته وايي ګرېټ پټهان
پښتون نۀ وي په ځان کېږدي نوم د خان
ستا خاص مقام دے په دنيا کښې ځان وپېژنه
جوړ شه د پښتون د رواياتو قدردان

او تۀ ولې هېروې خپله وفا او هم ننګونه وروره
زما پښتونه وروره
زما پښتونه وروره

دا څنګه پښتون يې چې په پښتو شرمېږي
د مورنۍ ژبې په ځاے په انګرېزۍ خوښېږي
ورك به شي دنيا نه او صرف نوم به دې شي پاتې
د پښتون په ځاے په انداز د مغربي ګرځېږي

پښتو کړه راژوندۍ چې درته حېران شي تول ملکونه ورور
زما پښتونه وروره
زما پښتونه وروره

د پښتون د مشرانو د تاريخ مشاهده وکړه
د پښتون د ننګ او ناموس مظاهره وکړه
چې پښتو به نۍ ګتله او سر به نۍ بائيللو
د پښتون د تورې او غېرت مظاهره وکړه

پت، ښېګړه، توره، وفا او ننګ خپل کړه اے ګلونه وروره
زما پښتونه وروره
زما پښتونه وروره
**

# خطونه

د مینې ډک د رنګه ډک
چې به مې لیکل په توره شپه کښې
کله ګل کله سپوږمۍ
کله لیلیٰ کله بدرۍ
ستا صفت به مې کولو
چې کله خط به مې لیکلو
خو افسوس کومه ډېر
چې ته زمانهٔ شوے او زهٔ ستا نهٔ شومه
نو اے د زړې مینې زوړه یاره
بس احسان به دې منمه
را واپس کړه اے جانانه
ما ته خپل هغه خطونه
***

## غزل

سترګو دې د زړهٔ حالونه ووئيل
ما ته ئې ټول پټ رازونه ووئيل

نن زمونږ اغيارو اعتراف وکړهٔ
مونږه ته ئې رنګ رنګ غرونه ووئيل

مور دې جنتي شه برکت شه پرې
تا ورته زما حالونه ووئيل

راغله او بوسه ئې رانه واخسته
ځان سره ئې خار ګلونه ووئيل

خلق راته ګورې په شکې نظر
چا ته دې خپل پټ خيالونه ووئيل

څومره متاثره شهٔ اياز په عشق
نن ئې ډېر دردمن شعرونه ووئيل

***

## غزل

اوس به ستا دَ کلي تمنا کوم
دې نه پس به خوښه یاره ستا کوم

ډېر راباندې ګران يې ته يقين وکړه
دا خبره زهٔ تاته رښتیا کوم

تهٔ چې څې نو زهٔ دې چا ته پرېښومه
زهٔ به چا ته نوره واوېلا کوم

ژوند هم لکه مرګ هسې سخت شوے دے
زهٔ چې زندګي ستا نه جدا کوم

زهٔ اياز به ستا نه ګيله نهٔ کوم
خير هره خبره به صفا کوم

**

# غزل

ما خو خپل ځان ګڼهٔ زما نهٔ شولو
وس مې ډېر وکړهٔ خو پخلا نهٔ شولو

په خپله مينه زهٔ پښېمانه نهٔ يم
درد ئې له مانه چې جدا نهٔ شولو

هر چا د ظلم انتها وکړله
زړهٔ مې په مينه کښې خطا نهٔ شولو

په دغه لاره ئې له تلو منع کړم
زما همدرد چې وهٔ رسا نهٔ شولو

واړه دنيا له ښکلو ډکه ده خو
ولې يو ښکلے هم زما نهٔ شولو

اياز پرې خپله ځواني وبائلله
خو زما خپل تقدير زما نهٔ شولو

**

# غزل

هېر به کړمه تا کېږي به دا څنګه
شم به د بل چا کېږي به دا څنګه

ستا د احساس بوي چې دے ما سره ملګرے دے
خوب کښې وينمه تا کېږي به دا څنګه

ستا تصوير خو نقش دے خاص د زړهٔ په سر زما
مخ ته ګورم ستا کېږي به دا څنګه

مينه کښې کۀ زۀ شمه تول ذرې ذرې وجود
بيا هم غواړم تا کېږي به دا څنګه

مينه د اياز چې ده ډکه له اخلاصه ده
مونږ به شو جدا جدا کېږي به دا څنګه

**

# غزل

څنګه به ګیلې مانې کومه اوس هغهٔ ته
یو ذره سکون چې مې هم نهٔ راځی دې زړهٔ ته

ستا رقیب هوښیار وهٔ زهٔ په مینه کښې پاګل ومه
وغورځېدم زهٔ چې د قبلې نه نمر خاتهٔ ته

پښې مې په مزل شولې پولې ژبه مې غوسه ده
یو پوتې احساس هم په والله کهٔ کېږي دهٔ ته

څهٔ خو به کېدل ایازه کار د محبت چې وهٔ
خود به اوس تاودېږم د بیلتون دې یخ سارهٔ ته

**

# غزل

چې وکړې چا سره نيکي هغه ختمېږي کله
وائي چې شور کوي ډېر زيات هغه ورېږي کله

چې ملاو شي او جدا شي کۀ لږ ساعت د پاره وي
روغ نيتے چې ملګرے وي هېرېږي کله

دروغ دورغ وي رشتيا کله ورکولے شي
رشتيا د دروغو په پردو باندې پټېږي کله

څۀ ساده دي هغه خلق چې تلي مينه د دولت سره
پاکه مينه په دولت باندې خرڅېږي کله

په حلاله کښې سکون دے په حرامه کښې کړاو دے
په حرامه کښې سکون درته ايازه ملاوېږي کله

**

# غزل

پوۍ نهٔ یم چې سترګې مې نن تا پسې ژړېږې ولې
زړهٔ قلاروم نن شپه نهٔ قلارېږي ولې

لکه د مار مې خوري ستا غمونه پرېږدي مې کله
په دلاسو ئې کړمه سترے نهٔ رضا کېږي ولې

زما او ستا مینه چې څرګنده په دنیا شوه
زمونږه پاکې مینې تهٔ دنیا دومره سوزېږي ولې

چې دواړه یو شو او وران شي په مینځ کښې دېوالونه
سترګې به زما او ستا بیا یو بل نه شرمېږې ولې

ایازه هره شپه یو چل جوړوي راته رقیب
نګهبان مې دې الله دے نهٔ ویرېږي ولې

**

# غزل

ستا مینې رانه جوړ کړلو پاګل
څکه خپلو پردو کوڅه کښې جوړ کړلو غوبل
ګرځم په کوڅو کښې ګورم در په در
لټوم لکه بوَرا چمن کښې ګل
دردونه اسویلي دي په زړګونو او لکونو
قطار کښې دي یو ځي راځي وریسې بل
کله خو واوره څو خبرې د سوز د ډکه زړهٔ
زهٔ ارماني یم ستا د ښکلي تور وربل
تر څو به درته وایم بس دے وس مې نهٔ رسېږي
بې جانانه راته ګران دي په دنیا کښې وسېدل
اے الله زهٔ ایاز ستا بنده یمه خاکساره
په دنیا کښې خدایان خلقو ولې ځان له جوړول

**

# غزل

خپل به کړمه تا راشه یو ځل بیا
مهٔ پرېږده تهٔ ما راشه یو ځل بیا

پټ به دي په زړهٔ کښې له دنیا کړمه
ویرېږمه اشنا راشه یو ځل بیا

کله به راځي زړهٔ مې پوښتنه کړي
ملامته نهٔ کړې ما راشه یو ځل بیا

یاره زمونږ د دیدنونو کړه رایاد وختونه
ستا دې قسم وي په وفا راشه یو ځل بیا

دشمنانان چې دې خوشحاله په ځان نهٔ کړي
زړونه مات کړه د دنیا راشه یو ځل بیا

**

# سپوږمۍ

اسمان د ستورو ډك دے

سپوږمۍ د ټولو نه ښائسته ده

د دې په شان پکښې بل نشته

هم داسې زما په زړهٔ کښې

ستا مخ لکه سپوږمۍ ده

د ټولو نه جدا يې

تهٔ زما د زړهٔ سپوږمۍ يې

تهٔ زما دَ ژوند رڼا يې

تهٔ بې رويه بې ريا يې

تهٔ زما ښائسته شها يې

***

# غزل

تهٔ زما شه ماله خپله نښانه مهٔ راکوه
هره ورځ اشنا نوې دوکه مهٔ راکوه

هره ورځ راته وايې چې سبا له به راځم
په دروغو ما له هر وخت دلاسه مهٔ راکوه

بس دے زما شه په رښتيا او صداقت سره
فضول اخوا دېخوا هسې بانه مهٔ راکوه

ضروري نهٔ ده چې خپل به وي هر وختې محفل کښې
اظهار د محبت له بيا اشاره مهٔ راکوه

تهٔ به ټوقې کوې ما به ځان مړ کړے وي
ما له په ټوقو کښې د مرګ اشاره مهٔ راکوه

**

## ازمېښت

اے نادانه زړګيه
ژړېدلے ولې
زهٔ ستا د درد نه بې خبره نهٔ يم
اے نادان زړګيه
ستا مولا، ستا مالك
چې دنيا باندې قادر دې
او- ....
زما مينه ئې په جانان کړه
ازمېښت کوي زما
چې څومره مينه کوم
زهٔ دَ هغه کبرژن
مغرور اشنا سره
***

# غزل

تږوله تږوله شپه کښېږي نهٔ راځي خوبونه
رانه تاو دي ستا خيالونه ستا فکرونه

حال به درته څهٔ وايم زهٔ د داسې وخت
چې درته وايي را روان يمه راځم ،کوه انتظارونه

ګله تهٔ مالك يې د ښائست د ګلستان
زهٔ تا باندې قربان يمه ستا واخلمه غمونه

ما درته وئيلي اے زړګيه هېڅ علاج ئې نشته
کړېږه اوس ژړېږه او نصيب دې شه دردونه

اياز به درته څهٔ وايي چې څهٔ په دهٔ تېرېږي
زما سوچونه ستا دي او هم يودې ړل خوبونه

**

# یادونه

هر وخت ورك ورك وي
زما پاګلتوب
ستا په یادونو کښې
لکه چې زما
څۀ واسطه نه وي
دنیا سره
صرف ستا یادونه
بس صرف ستا یادونه
زما ملګري دي
زۀ ئې ملګرے یمه
زما دَ هرې لارې
هر پړاو
خوارۀ ملګري
پاخۀ ملګري
***

# غزل

نۀ مې جانان نۀ محبت پاتې شۀ
هغه سُرور او نۀ لذت پاتې شۀ

زما او ستا وۀ تعلق د مينې
خدا ے خبر چې ولې محبت پاتې شۀ

دومره زخمونه مې خوړلي خلقه
اوس ئې د شمار څۀ ضرورت پاتې شۀ

د خوشحالئ او غم دي خپل خوندونه
د يو اظهار ته څۀ حاجت پاتې شۀ

ايازه اوس خو دَ هوس ياري ده
اوس دلته کوم ځا ے ادميت پاتې شۀ

**

# جانانه

اے جانانه شاه خوبانه

زهٔ تا پسې چې گرځم

تا گورمه تا گورمه

سترګې مې ړندېږي

ستا دَ نهٔ لیدو په وجه

په سرو شګو د رېګستان کښې

هم د ازغیو په لاره ځمه

د هجر هواګانې ظالمانې دي

بې واره واره اولوځي

زهٔ ئې مات کړم په دا شان

لکه اوچه ونه پرېوځي

هر سړے زما دښمن دے

زخمي کوي مې په خيګر

نو اے جانانه اے جانانه

زما لېمو کښې ته يې

او هم په دعاګانو کښې

زما عبادت

او حاجت کښې ته يې

کوم فرياد خپل الله ته

تا ترې غوارم تا ترې غوارم

بل مې هيڅ هم پکار نۀ دي

ستا محبت مې دے پکار

ستا رخسار مې دے پکار

اے جانانه اے جانانه

***

# دوه شعرونه

په تورو مچو مې د نزدې نه گوزار کړے دے
دا مې ورته د خپلې مينې اظهار کړے دے

ستا يمه ټول ته ځان په دې خبر کړه
ما ستا دَ الفت نه کله انکار کړے دے

**

لیکۀ به مې ستا نوم بیا زر به مې شلولو
بانې به مې کتلې یاره ستا د هېرولو

پوهېږم ملاقات راسره نۀ کوې جانانه
بیا هم ستا کوڅه کښې دا عاشق به ګرځېدلو

خدایے خبر چې د چا د خوب تعبیر شولې تۀ
ما به هره شپه په خوب کښې ستا دیدار کولو

په زړۀ کښې او دماغو کښې مې ستا مینه پرته ده
خبرو کښې د خلې به هسې ستا نوم را وتلو

سوچ وکړه ایازه کۀ څۀ حل ئې درسره وي
ګني دا حادثه بس ده ستا د ژوند د ختمولو

**

# غزل

څومره غمونه مې زغملي د شمارلو نۀ دي
ما څومره اوښکې تويولي د شمارلو نۀ دي

د يو مسکا په طمع انتګي مې اوچ شول
ما څومره خوبونه دي ليدلي د شمارلو نۀ دي

بې واره بې خطره هر سړے ګوزار راکوې
په زړګي مې داغونه لګيدلي د شمارلو نۀ دي

لکه ماشوم غوندې ژړا مې تولو شپه کړې ده
زړۀ مې سلګۍ داسې وهلي د شمارلو نۀ دي

کله وايمه ايازه تا وکړل ځان سره په خپله
په ځان مې بوجونه انبار کړي د شمارلو نۀ دي

**

# غزل

د مینې او ښکلا وختونه لږ رایاد کړه
په چیږ چاړ کښې د ژړا وختونه لږ ریاد کړه

دا تهٔ چې لاړې او زهٔ دې پرېښودم یک تنها
د ګرځېدو هغه جوړه وختونه لږ رایاد کړه

تا به وعدې کولې هم تا به ماتولې بیا
د معافۍ او التجا وختونه لږ رایاد کړه

دا څنګه ژوندون شهٔ چې پروا د یو بل نه ساتو
په خفګان کښې ډك د وفا منتونه لږ رایاد کړه

دا یو احسان مې ومنه چې قابل مې کړې په خلقو کښې
ما ایاز چې به درته ښودل سبقونه لږ رایاد کړه

**

# راشه راشه

راشه راشه اے جانانه راشه
دومره لرې رانه لاړې ولې
خوا له مې راشه
خوا کښې مې کښېنه
دا د هجر شپې ډېرې اوږدې دي
سپوږمۍ ته ګورم تا يادومه
کله خو راشه او زما د زړهٔ ور ووهه
کله خو ما سره خوږې خوږې خبرې وکړه
ډېره موده وشوه اے جانانه
زهٔ ستا په انتظار يم
زهٔ ستا لارې ته ګورم
دا د تنهايۍ وختونه رانه واخله
بس يو ځلې تهٔ راشه
لرې رانه مهٔ ځه
راشه راشه بس دے راشه
ما سره غاړه غتۍ شه
او بس دے اوس پخلا شه
***

# غزل

څۀ مینه چې ستا او څۀ مینه چې زما شی
یقین وکړه جانانه چې بدله به دنیا شي

زۀ هم به د جنت د هواګانو نه خوند واخلم
زما به هم رنګیه ستا په مینه کښې دنیا شي

ستا ښکلې او خوږې خوږې خبرې مې دمه کړي
برېښنونه د درد مند زړګي مې ښۀ شي په خندا شي

اخلاص مې محبت سره پخه یاري ده کړې
د حسن د جادو اثر دې ماسره پخلا شي

ایاز یمه د خپل زړۀ د محمود سره خوشحال یم
په کوم طرف چې څم ترلې لاره راته وا شي

***

## غزل

جانانه د نظره به شي ځان مهٔ جوړوه
په اوږو تږو سترګو دې ژوند مهٔ خرابوه

د ځان په دښمنۍ باندې اخته نهٔ شې ګل رنګه
له قصده په دې خاورو کښې ځان مهٔ بربادوه

خبره زما اوره او خبر هم زما اخله
زما غمژن زړګے جانانه نور مهٔ کړوه

ګلاب دې د ځوانۍ نه شرمېدلی دې پرون
ګلشن ته کله راوړه سپرلي ټول وتختوه

اياز دے د زړګي د باز په سپوري باندې ناست
تهٔ دهٔ سره يو څو لحظې ضرور ناسته کوه

***

## غزل

بېګاه يم ستا په ياد کښې ژړېدلے تېوله شپه
يقين وکړه چې ډېر يم دړدېدلے تېوله شپه

له ويرې او له ترهې بې پروا يمه اشنا
ستا هجر کښې يم دومره سوزېدلے تېوله شپه

تصوير ته ستا د مخ په ننداره وم تېوله ورځ
بيا سترګې مې په خوب کښې ژړېدلے تېوله شپه

زما د زړګي زور په کمېدو شو يم خبر
دا ته چې مې د څنګ نه بيلېدلے تېوله شپه

خبره د اياز په سر کښې هسې شورېده
تيارهٔ وه خو بيا هم ته ما ليدلے تېوله شپه

**

# ځه په مخه دې ښه

دا ته چې ځې جانانه
او خامخا جانانه
نو په تحفه کښې به زهٔ درکړم تا له
څو قیمتي څیزونه
واخله پنډوکے ئې کړه
زما د شپې خوبونه
زما سکون د ورځې
زما انا او ناموس
زما د زړهٔ کچکول ماتې ټکړې
یو مې کتاب چې مې لیکلے دے هم ستا د پاره
هغه ګلونه ئې په پاڼه پاڼه
ټول مړاوي شوي چې دي
ځان سره خپلې وعدې
او خپل لوظونه یوسه

تا چې د تللو اراده کړې ده
نو تا خالي لاسونه څنګه پرېږدم
بيا به مې زړهٔ شو کېږي
دا زما شان هم نهٔ دے
د پښتنو د عظمت دغه ادا
تا سره هم پالمه
زما او ستا د تعلق د وخت خوارهٔ درکوم
واخله د ځان سره دا ټول يوسه
او څه په مخه دې ښه
کهٔ بيا راتلے زهٔ به هم داسې يمه
لکه چې اوس مې په سرو سترګو پرېږدې
***

# غزل

مستو خنداګانو دي شوکلے دے
روغ دے رانه سم زړګے وړلے دے

ځار دَ دغه ګل دَ پاڼي پاڼي شم
تا چي خپلو زلفو کښي بنډلے دے

يو زهٔ نهٔ يم دلته هر مئين، عاشق
ستا حسن نتلے دے، ټکلے دے

دا چي په ملك ملك دے مشهور په ننګ
دا زمونږ دَ خاورو ختو کلے دے

ځار دے شمع رويه، شغله بار مخ نه
تا پري خپل مئين اياز سېزلے دے

**

## هغه څهٔ چې زهٔ ئې په تا باندې شېدا کړم

ستا ښکلے مخ لکه سپوږمۍ
ستا سترګې غټې غټې
ستا سترګو کښې وفا ده
ستا سترګو کښې حیا ده
ستا کتل سپوږمۍ چې وي په بام
ستا شرمېدل
لکه په وریځو کښې چې پټه شي سپوږمۍ
ستا خندا ده عجیبه
ستا خندا سره ګلونه په خندا شي
ستا خوارهٔ وارهٔ زلفان
په قطار پکښې پراتهٔ چې وي ګلان
ستا خوږې خوږې خبرې
په ما لګي ملغلرې

ستا ځوانۍ کښې رنګيني وه

ستا بدن کښې مدهوشي وه

ستا ځواني او هم ښائست

د رنګونو يو ګلشن دے

راته ښکارې ښاپېرۍ

په دنيا کښې مالکان ټول د ښائست

ستا ښائست ته نهٔ رسېږي

ما چې به خاکه په خپل سوچ کښې جوړوله

ما به چې ليدلو په خوب کښې کوم تصوير

هغه ټول خوارهٔ رنګونه

جانانه.....

تا کښې وو موجوده

***

# هغه سترګې

بالکل تا راته وئیلي وو
ډېرې ښائسته دي
د ټولو نه جدا دي
تاوئیل او هم تا وئیل
ستا سترګې یادومه
ستا سترګو کښې مستي وه
هم شوخي وه ډېره زیاته
ډکې وې د شرارت نه
اوس واوره کۀ ئې اورې
هغه سترګې اوس ژړېږي
هغه سترګې اوس ړندېږي
ستا د نۀ لیدو په وجه
***

# ماته یاد دي

کۀ تا ته یاد شي ما تا ته وئیلي وو
زۀ اودۀ شوے نۀ وم په هغه شپه کښې
ټوله شپه مې کړي وو سوچونه
د سپوږمۍ شپه وه
خوښولو مې ستا د پاره نوم
کله سپوږمۍ
کله به مې وې چې تۀ ئې ستورے
کله جانان به مې ګڼلے
کله به ګل راته ښکاره شوې
کله به حوره د جنت وې
لګیا به ومه ځان سره

پوهېدم نه چې ته څهٔ يې
ستا حسن کښې سادګي ده
تهٔ ښائسته يې ډېره زياته
دا رښتيا وېنا کوم
ستا په رنګ به بل څوك نهٔ وي
اوس هم چې کله کله
سپوږمۍ په اسمان کښې راښکاره شي
تهٔ زما په سترګو راخوره شې
***

# پښتنو زلمو

اے د پښتونخوا پښتنو زلمو
اے ننګيالو او ګلالو زلمو
تاسو د چمن ګلونه تاسو د اسمان ستوري
اے خړو پړو پښتنو زلمو

مومند يا هشتنغر، خېبر کۀ جيناکوړ دے
خټک يا اچکزي، باګرام دے کۀ کونړ دے

دستورو په شان ټول يو توريالو زلمو
اے د پښتونخوا پښتنو زلمو

فخر په پښتو او پښتونخوا کوئ
راشئ په غېرت وياړنه لا کوئ

اے د لرې برې شاه زلمو زلمو
اے د پښتونخوا پښتنو زلمو

په تنګ او په غېرت وطن ډك د خوشحالۍ کړه
بيا ګوره ورته خانده ديدن د شين خالۍ کړه

اے مستو شاه زلمو مړنو زلمو
اے د پښتونخوا پښتنو زلمو

دا د ګلو باغ د ميوو ډك پالنه غواړي
دا له غلچکيو او يرغلګر، ساتنه غواړي

اے ترکزيه قربان له ترکزو زلمو
اے د پښتونخوا پښتنو غواړي

***

څو ځل مې درته ووې چې په تا باندې شېدا یم
په قسم ئې درته وایم په قسم ئې درته وایم

زما نوم چې ستا نوم سره یو ځاے شي
دا څومره ښکلې ښکاري لکه تا لره پېدا یم

اکثر ورك ورك ګرځېدم ستا یادونو کښې
په مثال د لېوني دنیا نه بې پروا یم
**

# غزل

لاړې د ژوند دې تول رنګونه يوړل
موړي د ژوند دې امېدونه يوړل

چې به تصوير مې ئې لمبو کښې وۀ تل
زما د سترګو ئې خوبونه يوړل

لکه د وينې به وه په تن کښې
رانه د مخ ئې سرۀ رنګونه يوړل

لکه زمونږ چې پېژندنه نۀ وه
زما د لاس نه ئې لاسونه يوړل

اوس نۀ رغېږم او نۀ مرم ايازه
باوېړي نور تول مرضونه يوړل

**

# دَ ساده حسن ملکه

زهٔ ئې د حسن سادګۍ ته فکر يوړم

د مُسکا په چپو کښې ئې شوخي وه

مخ ته ئې کتنه د کتاب وه

ګلابي سترګې ئې ډکې د خماره

په کتو کښې ئې اثر لکه د باز وهٔ

تورې زلفې ئې درازې

خبرو کښې ئې اثر د جادوګرو

کله رټل کوي غصه شي

کله خوږه خوږه ګويا شي

کوي اداګانې په تېزه تېزه

کله کوي خبرې

لکه چې وي په خوب کښې

کله خوش مزاجه ګڼېږي

یا خماره ګویا وي

په مثال د رندانو

مخ ئې ځلېږي په مثال د سپوږمۍ

سترګې ئې پړقېږي په شان د ستورو

نۀ شونډو له رنګ

نۀ سترګو کښې رانجۀ

نۀ جامې شوخې شوخې

نۀ لاسونو کښې بنګړي

نه پښو کښې پانزېب

بیا هم وه خوږه خوږه ایازه

دا د ساده حسن ملکه جینۍ

***

# سندره

تهٔ زما شه زهٔ به ستا شم دا وعده در څه کومه
تا به خوشحاله زهٔ ساتمه
تا به خوشحاله زهٔ ساتمه

په سترګو کښې مسکا او په شونډو دې خندا وي
ورك دې شـــه ستـــا بـــلا دې پـــه بـــل چـــا وي
د دنیاټولې خوشحالۍ به ستاپه پښو کښې وشیندمه
تا به خوشحاله زهٔ ساتمه
تا به خوشحاله زهٔ ساتمه
ستا په مینه کښې عجیبه غوندې احساس راسره مل وي
چې تهٔ نهٔ یې ستا یادونه انګارونه خو بیا تل وي
خیال کوه په ترکزي ګني مړ به شمه
تا به خوشحاله ساتمه
تا به خوشحاله ساتمه

***

# غزل

ما درته په لاره کښې ګلونه دي شيندلي
ته به راځې ما دېوالونه رنګولي

دا ښکلې هواګانې چې راځي ستا د طرفه
يادونه دَ خوشبو دې دَ مستۍ نه ګډېدلي

ستا د ښائست په مخکښې ګونګے شي زما سوچ
د تعريف ټول الفاظ مې د دماغو نه وتلي

يادونو ته دې ووايه چې نور نهٔ راځي اوس
شپه مې شوګيره وي خوبونه مې د سترګو تختېدلي

په انتظار کښې د اياز سترګې شوې مرغۍ مرغۍ
خوبونه نوي نوي په لېمو کښې مې نيولي

***

# خوند

په توره توره شپه کښې

د ژمي په جړۍ کښې

چې جانان درسره نۀ وي

د يادونو سلسله کښې

په لاس کښې دې قلم وي

هم پروت وي په کاغذ

د ليکلو دا خوندونه

چرته نۀ وي بله شپه کښې

***

# خوږه خوږه

سترګې دې خلا کوي

مخ دې د مُسکا نه ډک

شونډې له خندا کوي

ته ډېره خوږه چې يې

ستا ملګرتيا خوښ کړي ما

هو! د خياله کوښ کړي ما

***

# غزل

په هوا کښې شمعې بلوې راته پاګل ښکارې
مينه په زوره چې کوې راته پاګل ښکارې

په حقيقت کښې په رښتيا باندې دا کېږي کله
تهٔ چې په خوب اعتبار کوې راته پاګل ښکارې

په محبت کښې کړاو وي خامخا لاليه
تهٔ پکښې شپې چې روڼوې راته پاګل ښکارې

خپل خپل وي ياره په نهٔ څهٔ پردي کېږي کله
اوبهٔ په ډانګ چې بيلوې راته پاګل ښکارې

بعضې خبرې هم د ځان نه پټول غواړي
رازونه ټول بیانوې راته پاګل ښکارې

جانانه واوره پردي کله ستا نسب جوړوي
د بل بچے چې خپلوې راته پاګل ښکارې

بد د دنیا نه ورکېدے شي کله وه جانانه
خپل ځان چې هسې کړوې راته پاګل ښکارې

کله مې زړهٔ کله دماغو ته رجوع ایازه
تهٔ چې د زړهٔ هر وخت منې راته پاګل ښکارې

***

# پوښتنه

تا نه پوښتنه کوم، لږ راته ووایه
څوك چې په چا ګران شي
یا وربانديې ښهٔ لګي
نو ایا دې ته مینه وایي
اخر په دې کښې څهٔ کېږي
یا پکښې هم دا کېږي
دا نن سبا چې په ماشوي دي
هر وخت مې زړهٔ ویرېږي
هم نرے نرے خوږېږي
کله زړهٔ مې وي ورك ورك
خوبونه مې حرام وي
سکون مې تښتېدلے وي
یا ایا دې ته مینه وایي
کله ښائسته ښائسته خوبونه وینم
کله لوے لوے امېدونه تړم

کله باران وي د يادونو
کله د جدايۍ په اور سوزېږمه
څۀ عجيبه غونډې وجود ئې دے
څۀ د موسم پته ئې نۀ لګي
کله هر څۀ راباندې ښۀ لګي
کله هر څۀ راباندې بد لګي
کله دنيا پورې هم تنګ شمه
زړۀ سره زړۀ چې کله يو شي
بيا دا سلسلې وي په چپو چپو
کله اظهار ته مې زړۀ کېږي
کله هېڅ وئيلے نۀ شم
کله هېره کړم دنيا ټوله
خو اخري خبره دا ده
راباندې ګران به مې هېر نۀ شي
***

# غزل

ورك به كړو غمونه راځه چې نوې دنيا جوړه كړو
راځه زما جانانه چې ژوندون نه وفا جوړه كړو

تا ته به زهٔ ماته به تهٔ پكښې ښكارېږې مدام
توره شپه كښې به سپوږمۍ د رڼا جوړه كړو

ټولې د حسن رڼاګانې دې په ما وشينده
د هجر تورې شپې نه به ښكلا د سبا جوړه كړو

ګرانه جدايي وي دا به مو ډېر وژړوي
وركه شه ښاريه اوس به ځنګل كښې قلا جوړه كړو

په مينه كښې ايازه د ګيلو خبرې نهٔ كوي خوند
معاف به كړو يو بل او مينه به بيا جوړه كړو

***

# د زړګي ځان

خپل زړګے راته پاګل ښکاري

یا ویرېدونکے یا بزدل ښکاري

دے چې په تا دے مئین شوے یاره

د غم سپېرو باندې شین ګوشین دے

دا چې تا پسې کړېږي مدام

چې مخامخ شي بیا ویرېږي ولې

ډېر زیات ئې پوهه کړمه

دلاسې هم ور کړمه

خو نادان دے نۀ پوهېږي

چې سلګی وهي ژړېږي

نو بيا دے کله چپ کېږي

کړوي مې شامدام

هم مې توله شپه وينښ ساتي

تۀ د هر څۀ نه خبر يې

زۀ په تا باندې مئين يم

تا ته پته ده جانانه

ناخبره په هېڅ نۀ يې

اے زما زړګي ته ګرانه

اے زما د زړګي ځانه

اے زما ښکلي جانانه

***

## غزل

د بل په کار کښې کار لرل زما نه نهٔ کېږي
بې تپوسه او بې واره ګڼېدل زما نه نهٔ کېږی
زړهٔ مې غواړي چې هر چا له خوشحالي راوړمه
ښکلي او خوارهٔ خویونه پټول زما نه نهٔ کېږی
زهٔ تل احسان د خپل محسن د يو ذرې منمه
د محسنانو پښې وهل زما نه نهٔ کېږي
زهٔ به خپل ځان په خوشحالۍ ترې نه لوګے کړمه
د ضدبازۍ په درياب کښې ډوبېدل زما نه نهٔ کېږي
لکه مرهم غوندې پکار شمه زخمونو لره
څوک بې ګناه زخمي کول زما نه نهٔ کېږي
څهٔ چې مې په زړهٔ وي تل ئې په خلهٔ راولم
د دروغو غرونه جوړول زما نه نهٔ کېږی
په نهٔ خبره کهٔ ايازه څوک خفه شي رانه
هغه انسان پخلا کول زما نه نهٔ کېږی

**

# وروستے خواهش

اے ژوندونه اے ژوندونه
لږ صبر وکړه لږ غونډې ایسار شه
بیا درسره ځم بیا درسره ځم
بس یو ځل مې ورته پرېږده
چې یو ځل ورسره ملاو شو
د زړهٔ حالونه ټول چې ورته ووایم
بیا درسره ځم بیا درسره ځم
ښکلے مخ ئې په قلم جوړ دے
او زلفې ئې په اوږې کښې وریځې
شنې سترګې ئې ډکې د کشش نه
هم سرې شونډې ئې لالونه
دا جلوې ټولې د هغې دي
خو لږ د تلو نه مخکښې
په سترګو کښې هم ساه کښې
هم خوبونو او یادونو کښې
او په دې زړګي کښې

ئې وساتم.......
نو بيا درسره ځم بيا درسره ځم
زۀ کۀ هر چرته يمه
دا په قسم وايمه
فاصلې د ژوندانۀ کۀ راشي
مينه به مې نوره هم سهوا شي
چې ئې وغواړم
او ورپسې ژاړم
لږ خو ئې وګورم
لږ ورسره کښېنم
شوې وعده خپله پوره کړم
غېږ ترې نه چاپېر کړم
او مخ تندي باندې ئې ښکل کړم
نو بيا درسره ځم بيا درسره ځم
***

## غزل

زړهٔ مې غواړي چې ځان ته دې نژدې کړم
د جدايۍ دغه زنځير د مينځه پرې کړم

زهٔ د مېخانې ارمان هېڅ کله نهٔ کوم
شونډې شراب او چشمان ئې پېمانې کړم

دا دنيا راته فضوله شان ښکاره شي
هر کله چې زهٔ ګزر په هديرې کړم

چې ورته ګورمه ايازه تل کړېږم
وېم چې خطونه دې وسوزم ايرې کړم

**

# غزل

ماشاء الله ، سبحان الله،ماشاء الله، سبحان الله
ستا مخ ته په کتو شوم د خپل ځانه بې پروا

سترګو کښې حيا او په شونډو ئې مسکاده
په کتو ئې مړېدل نشته شاهکار دے د الله

لکه چې د جنت نه چرته حوره وي راغلے
ما داسې حسن چرته وۀ ليدلے په والله

اے لويه مالکه د اياز زړۀ له صبر ورکړې
د حسن پلوشې به ئې کړي د زړۀ په رنځ اخته

**

## غزل

د سترګو په لېمو کښې دې اشنا زهٔ ګرځومه
د زړهٔ په اندېښنو کښې دې اشنا زهٔ ګرځومه

ستا حسن او ګفتار د نورو خلقو نه جدا دے
سپوږمۍ غوندې په ستورو کښې دې اشنا زهٔ ګرځومه

ستا د سترګو په کتو مې زړګے زخمي زخمي شهٔ
د زړهٔ په پرهرو کښې دې اشنا زهٔ ګرځومه

خبرې چرته وانهٔ ورې اشنا د رقیبانو
تل په وسوسو کښې دې اشنا زهٔ ګرځومه

ایازه چې د مینې د ښکلا خبرې وکړو
ژوندون ئې په سلګو دې اشنا زهٔ ګرځومه

***

# منت

يو سوال درته کوم

يو منت درته کوم

د ژمي د شپې په جړی کښې

څوك زما غوندې کښې ورك نهٔ کړي

د شپې د سپوږمۍ په رڼا کښې

څوك زما غوندې کښې لوټ نهٔ کړي

زما زړهٔ خو دې ټوټې ټوټې کړهٔ

زړهٔ د بل چا چر ته ټوټې نهٔ کړې

دا سوال زما ومنه

دا منت زما ومنه

ګني......

ازار به درپسې شي

ښېرې به درپسې شي

د معصومو عاشقانو

د بې وسه انسانانو
هسې نهٔ چې لعنتي شې
هسې نه چې ازاري شې
او ايازه ورته وايه
ازاريان کله وي خوشحاله
لعنتيان تل وي بې قراره
بس.......
دا منت زما ومنه
مينه کوه په مخلصې
يارانه کوه خو نهٔ په لالچې
***

# غزل

تا کړم لېونے جانانه تا خو سم پاګل کړمه
ژوند کښې دې دانه وانه او پاڼې لکه ګل کړمه

تا چې شنې سترګې په رنجو کړې ډکې تورې
سنګدلې اے قاتلې زهٔ دې د ځان قاتل کړمه

اے د ښائست ملوکې تا ته څهٔ پته ده
زهٔ دې ستې نائښې په کاکُل کړمه

خبر دے کهٔ ویرېږې د دنیا د تهمتونو نه
راشه په خوبونو کښې چې ټوله شپه دې ښکل کړمه

یو ځل دې را وکتل بیا دې هېڅ پروا ونهٔ کړله
ایاز په غم اخته دې هر وخت لارې ته کتل کړمه

***

# غزل

بس دے اوس ئې هېر کړه
غمونه ترخ لاندې بس ګېر کړه

بيا به تېره وي لاسونه به مروړي
موقع ده لاسونه ترې چاپېر کړه

عبث ژړېږه مهٔ تکړه شه همت وکړه
کړه نوې دنيا جوړه تېر په هېر کړه

په شان د جانان يا جانان د ځان په شان کړه
کهٔ خندا نهٔ وي هغه هم ځان سره دلګېر کړه

بس دے اوس ايازه لرې ترې کمبل کړه د غفلت
تکړه شه رابېدار د خلقو لږ ضمير کړه

**

# مایوسه

سترګې مې د اښکو نه دریاب دي
او ته راته وایې چې په تق تق وخانده
زهٔ د دنیا نه مرور ګرځمه
د زړهٔ لګېدو راته منت مهٔ کوه
زهٔ د حالاتو نه مجبور یم
هم بې وسه او رنځور یم
زړهٔ مې ډېر زیات درد ېږي
بیا هم فریاد کولے نهٔ شم
زما زخمونه لا تازه تازه دي

زما زخمونه لاتازه تازه دي

بل ګوزار زهٔ زغملے نهٔ شم

ما به چې رنګین رنګین خوبونه لیدل

د هغې تولو نه یادونه جوړ شول

ما خو وئیل چې خوشحاله محفلونه به وي

افسوس چې زما خواهش په تنهایۍ بدل شهٔ

هر طرف ته لوګے او هم لمبې دي

تهٔ ایاز ته وایې چې نوې کور جوړ کړه

نو زهٔ.......

نوے کور نوې قلعه څنګه جوړه کړم

په داسې ډزا داسې غوبل کښې

***

## غزل

ژړوي مې ستا خوارۀ خوارۀ يادونه
سوزوي مې ستا دَ هجر سرۀ اورونه

پېښوره! ستا په غېږه کښې دمه شم
چې مې ستړے کړي دَ نور وطن ښارونه

"پښتانۀ" څۀ لېوني څۀ پاګلان دي
"نړوي" دَ مشرانو "ګمبدونه"

نور قامونه په تاريخ ليکلو بوخت دي
يو پښتون دے سوزوي خپل تاريخونه

نور دي څومره حُسن وستايم محبوبې
دَ اياز خو دا دي چاپ شول کتابونه

**

## غزل

تا پسې په کړاو کښېږ څۀ کم پاتې نۀ وۀ
زما زړۀ کښې چې ياره نور دم پاتې نۀ وۀ
دا د تقدير دا ئې کار فېصلې عجيبه
ميا مُلا د بابا چرته چم پاتې نۀ وۀ
نن څۀ ډېره موده، پس چې ما وليده
پخوانے حسن ئې ښځې سم پاتې نۀ وۀ
ستا غمونه امېل ما چې غاړې له وړۀ
سترګې اوچې زما پکښې نم پاتې نۀ وۀ
څۀ ګډون جوړې شته ستا ضمير کښې اشنا
چې زما غوندې کس درنه هم پاتې نۀ وۀ
رنګ په رنګ ستا درانۀ چې ورل ما اياز
ستا په لاس کښې منم نور ستم پاتې نۀ وۀ

**

# غزل

سوچونه او فکرونه بدلول غواړي
خفه خپله دنیا پخلا کول غواړي

رابه شي سپرلے بیا به رنګینئ شي
ګلونه په هر خوا باندې شیندل غواړي

تا وئیلي ما وئیلي په بلا وولئ
خطاګانې یو بل ته معاف کول غواړي

تر څو به د یو بل په وینو رنګ ګرځو
دا رسم او رواج اوس بدلول غواړي

راځئ چې ورته یو شو اے ایازه
غماز زمونږ په مینځ کښې زغلول غواړي

**

غزل

## غزل

زما په سترګو کښې خو ستا څهره ده
چې ستا په سترګو کښې دَ چا څهره ده

زهٔ ئې قدم په قدم لوټ کړم چور کړم
دا دَ رهبر او رهمنا څهره ده

دلته ژوندي څهٔ مړي هم ويرېږي
دَ خوف نه ډکه دَ هر چا څهره ده

نن مازيګر پيکه پيکه غونډې دے
نن مړاوې مړاوې دَ شها څهره دے

ايازه سوې سوې وينې وينې
زما دَ ښکلې پښتونخوا څهره ده

**

## غزل

کله مې سوچونو کله فکرونو کښې ټوکېږي
کله مسکا کله خندا شي او په مخ باندې ګډېږي

د الفاظو په جامه کښې جوړ راته درياب شي
کله يو غزل شي په کاغذ باندې ښکارېږي

سُرونه او سازونه ټول پکښې راجمع شي
يوه ښکلې شان نغمه شي په سينه کښې مې غړېږي

يوه نوې دنيا جوړه شي او ښکلے شان ماحول شي
ټول رنګين خوبونه شي او په سترګو کښې اوسېږي

تهٔ د اياز د اظهارونو حوصله يې
کله شي راز د لعل غوندې سترګو کښې پړکېږي

**

## غزل

هسې د دروغو په بانو باندې راضي شوم
د ګلو په بدله کنبې په ازغو باندې راضي شوم

ضد ئې زما د ضد نه سل چنده زورور وۀ
اخر د خپل ځان په بدلېدو باندې راضي شوم

د حسن سرې لمبې ئې وې دومره ګرمه ورې
زۀ يخ لکه د واورې ويلېکېدو باندې راضي شوم

ايازه ورته وايه چې بله لار مې نۀ وه
ځکه خو نقصان اخستو باندې راضي شوم

**

## غزل

دردونه نـې تـول ما سره پرېږدئ
ګل لکه دَ غاتـول ما سره پرېږدئ

لاړ شئ زما تولې خوشحالۍ ورکړئ
زړهٔ مې خفه لکه بهلول ما سره پرېږدئ

ترخې خبرې تل بدۍ ته وخې
داسې بې توکه او بې تول ما سره پرېږدئ

ایازه هر څهٔ له ما نه واخلئ
خو یو ځادر او یو پکول ما سره پرېږدئ

**

دیدن

# دیدن

ستا څومره ښکلے مخ دے
ستا څومره ښکلې سترګې
ستا مخ باندې حیاده
ستا سترګو کښې وفا ده
ستا سترګې چې غړېږي
رڼا ورته پسخېږي
کله بانهٔ چې راخوارهٔ کړې
لکه په عالم چې توره شپه کړې
ستا په خندا سره ګلونه راټوکېږي
دَ کوهِ قاف ښاپېرۍ ترې نه شرمېږي
زلفې دې شیندلې دي
رانجهٔ دې لګولې دي
ستا خوږې خوږې خبرې
لکه چې اورمه سندرې
ما ښکلې ډېر لیدلي
دومره خوارهٔ راباندې نهٔ دي لګیدلي
مستې څواني او مدهوشه بدن
بس شپه ورځ چې کومه ستا دیدن

## غزل

زما په زړهٔ کښې ئې رازونه کتل
ځکه ئې ټول زما خطونه کتل

د جنګ د پاره ئې بانې جوړولې
په ما ئې پورې تهمتونه کتل

مسکی مسکی به په ژړا شوه ورته
چې ئې دَ خپل زړګي زخمونه کتل

څهٔ عجیبه ئې مشغله لرله
چې ما د پاره ئې غمونه کتل

رقیب ایاز نه په قلاره نهٔ دے
د یار کوڅه کښې ئې خاپونه کتل

**

## غزل

زما په حال باندې خندا مهٔ کوه
خبرې ګلې شا په شا مهٔ کوه

ګوره شکرې به دې خلهٔ کنبې وې تل
اوس مې سېزې د طنز وېنا مهٔ کوه

دنيا دَ هېچا نهٔ دا فاني ده
مينه، امېد دَ دې دنيا مهٔ کوه

ايازه نهٔ راځي جانان نهٔ راځي
بس سترګې سرې نوره ژړا مهٔ کوه

***

# وړوکوالے

نن د کلي په حجره کښې
پاس په چت باندې يوازې
خپل يادونو سره ناست وم
د کلي د هوالونو ته چې ګورم
لارو کوڅو ته چې ګورم
هغه منډې مې يادېږي
هغه لوبې مې يادېږي
پولو او پټو ته چې ګورم
بوټو او باغونو ته چې ګورم
هغه د مارغانو شور مې يادېږي
د کلي يو يو منظر ته چې ګورم
ما ته پکښې ښکاري خپل وړوکوالے
اوس ابادہ ابادي ده

## غزل

ذکر د بې وفا جانان کول عبث دي
هم په ټېر عمر باندې ارمان کول عبث دي

د ګیلې ځاے او خاطر چې پکښې نۀ وي
هغه انسان سره خفګان کول عبث دي

بس دے زړۀ دې پوۍ کړه اے ایازه
بې وفا پسې د اښکو باران کول عبث دي

**

## غزل

زړهٔ ورکولو کښې تاوان نشته
مينه کولو کښې څهٔ ګران نشته

زلفې دې بيا دي خورې کړې لېلا
نن پکښې ولې سرهٔ ګلان نشته

طنز خو به کېږي خامخا درباندې
عشق کښې د دې نه څهٔ ګزران نشته

ښکلې به درشي درله خوب اياز
په نني شپه چې دې جانان نشته

**

## غزل

غتو غتو سترګو ئې زما خوبونه وړي دي
په مخ ئې انتګو لکه انار ګلونه کړي دي

خېر دے لږ ایسار شه په دیدن باندې دې موړ نۀ یم
ما ورته په اوچو شونډو ډېر سوالونه کړي دي

راشي په خوبونو کښې او نېغ مې زړګے وچیچي
زلفو د کمڅو نه ئې تور ماران جوړ کړي دي

مۀ اودرېږده ماته تل ما به کړې بدنامه تۀ
ما ته ئې په نرمو شونډو دا سوالونه کړي دي

څنګه به ایاز د خپل جانان نازونه نۀ وړي
خلقو د بدرنګو هم ډېر نازونه وړي دي

**

# يخې اوبۀ

د جون مياشت وه

سخته ګرمي وه

مزده کښې ناست وم تلم کارخانو ته

يو ماشوم مې اوليدۀ

ډېر ښکلے او ښائسته وۀ

منډې به ئې وهلے

کله په تېزه او کله په ورو ورو

د ګاډو رفتار سره به سم روان وۀ

کله په مینځ کښې به ئې ګېر هم شۀ
او د مرګ په غاړه باندې تلو
کله کله يو ديکه به ئې هم وخوړله
د کوم ګاډي په اړخ باندې
خپل قسمت ئې غونډلو
په مخ ئې عاجزي وه
هم لاچاري او بې بسي وه
په لاسونو کښې ئې بوج
د خپل ځان او د خپل کور
د بورډ په ستهاف ولاړ وۀ
او دا يو اواز به ئې کولو
يخې اوبۀ يخې اوبۀ
دوه روپۍ ګلاس

## غزل

سوچونه او فکرونه چې دې سم وي
نو دَ خلې وتي لفظونه به دې سم وي

هر کله وښنا چې دې درنه وي
خود بخود نور عملونه به دې سم وي

عملونه چې صالحه دې شروع کړل
بیا په خپله کردارونه به دې سم وي

ایازه چې د خپل کردار حفاظت وکړې
ټول خیالونه او فکرونه به دې سم وي

**

چې څوك تلي دي بيا كله دي راغلي
هېڅ حاصل به نهٔ كړي ډېر كهٔ په فرياد شي

دا چې تلله خامخا په دغه لاره
زما سوچ به ئې د قېد نه څنګ ازاد شي

يو ځل بيا كهٔ مې په ژوند خوشحالي راشي
سوال كومه كهٔ پوره مې دا مراد شي

د اياز نه واخلې تل داسې كارونه
چې د خوار غريب كورونه پرې اباد شي

**

## غزل

روغ کۀ لېونے يم تۀ به مې نۀ هېرېږې
تر څو چې زۀ ژوندے يم تۀ به مې يادېږې
کله چې سپوږمۍ د اسمان په غېږ کښې لوبې کوي
تر څو چې دا زړګے زما سينه کښې لوبې کوي
تۀ چې روح ئې او کۀ وينه بس بدن کښې مې ګرځېږې
تر څو چې زۀ ژوندے يم تۀ به مې يادېږې
سپرلے ګلونه چې تهوکېږي رنګ په رنګ پکښې
خزان پاڼې چې پرتې وي څنګ په څنګ پکښې
خزان کۀ د سپرلي ئې لکه هوا په ما لګېږې
تر څو چې زۀ ژوندے يم تۀ به مې يادېږې
کله سترګو نه چې اوښکې خوشحالۍ کښې څي
کله سترګو نه باران چې بې وسۍ کښې څي
غم کۀ خوشحالي وي بس په سترګو کښې غړېږې

د ژمي په باران کښې دواړه ژامې چې درزېږي
د اوړي په باران کښې مستي چې راوروېږي



د ژوند هر لمحه کښې د اياز مخ ته اودرېږي
تر څو چې زۀ ژوندے يم تۀ به مې يادېږې
***

# ما ته ئې ووابئ

تـهٔ عبـث پـه مـا مـهٔ ساته نظـر
زهٔ ستا د خيالونو هېڅ نهٔ کوم قدر
پـه مـا او تـا کښې فـرق ډېـر دے
زهٔ او تـــهٔ نــهٔ يـــو برابـــر
زمـــا مثـــال لکـــه د ســپوري
ستا مثـــال د اوړي نمـــر
زهٔ يـــم د ګـــلاب ګـــل
تـــهٔ ئـــې د لارې يـــو کنکـــر
زهٔ د ژمـــي يـــخ ســـحر
زهٔ د چمـــن غونـــدې رنګيـــه
تـــهٔ د صـــحرا غونـــدې بنجـــر
زهٔ د ســـپرلي مســـته هـــوا
تـــهٔ د خـــزان ســـپور نظـــر

زهٔ وربمــــه ډکـــــه د خوشـــــبو
تـهٔ بـې خونـده شـور لکـه د بحـر
زهٔ ډالـــــی یــــم د خوبونــــــو
تـــهٔ یـــې شـــپه لکـــه د هجــر
زهٔ تعبیــــــر د ســــرو ګلونــــــو
د بلاګـــانو ډك ســـتا مقـــدر
زمـــا او ســـتا انــداز جــدا دے
ســوچونه زمــونږ نــه دي برابــر
ایـــاز شـــړل هلـــك د کلـــي
زهٔ تـــازه غـــوټی دَ پښــــور
***

## غزل

ځان راته شاعر نۀ ښکاري هر څۀ په توکل ليکم
لاس کښې مې قلم دے ياره تا باندې غزل ليکم

حسن ستا څوك هم چې په شان د سپوږمۍ وګڼي
دغه دي ناپوهه زۀ په دوي پسې خندل ليکم

څنګه ئې زۀ خوښ کړمه د زړۀ نه راته ګرانه چې ده
هغه کۀ ده حوره کۀ ليلىٰ نوم پرې د ګل ليکم

په ليکلو کښې کېدے شي چې سحر شي نن ايازه
شعر پسې شعر او بيا ورپسې بل ليکم

***

## غزل

کۀ تۀ د حد نه پورې وځې راته حال ووايه
کۀ مې په زړۀ کښې ننوځې راته حال ووايه

په لاره ستا د پاره خبر دے بيا به نۀ کښېنمه
کۀ تۀ په شا کتو پرې وځې راته حال ووايه

ستا د ديدن سره سحر او ماښام ښۀ تېرېږي
کۀ په پټ مخ د کوره وځې راته حال ووايه

مينه دې اوس هم د اعتبار د کوره نۀ ده وتې
اخلې کۀ اور لکه د دروزې راته حال ووايه

اياز بادشاه نۀ دے چې خان له محمودان وساتي
اياز ملنګ سره به وځې راته حال ووايه

***

## دوه شعرونه

مخ ته په کتلو دې مجبور یمه
وجه ستا د حسن ده رنځور یمه

ما چرته کښې غم لیدلے هم نهٔ وهٔ
ستا د بې رخئ د لاسه چور یمه

**

# لوپټه

یو ځلې مونږ کره راغلے مېلمستیا باندې وه
ورسره نورې جینکۍ هم وې
زهٔ به د کوره بهر نهٔ وتمه
خو د نظر په چاپېرچل کښې مې هغه مېشته وه
غرمه کښې کور ته لاړم
کوټې نه ننوتم
په کټ کښې پرې وتم ستومانه غونډې
د کټ تر څنګه وه ځوړنده لوپټه رنګینه
دا د هغې وه زما زړهٔ کښې چې وه
زر مې راکش کړه تر سینې مې راوړه
بیا مې په مخ کړه راخوره ملګریو
لکه شراب چې مې وې څکلي بلها
هسې مدهوشه شومه
زما خیالونه په مستۍ سر شو
څهٔ عجیبه شان خوشبوي وه پکښې
ما وې کهٔ دا مې په سینه پرته ده
هغه چې زهٔ ورپسې ډېر لېوال وم
***

## غزل

خبره ټوله زما سپینه ده، مني او کهٔ نه
ورسره اوس هم زما مینه ده، مني او کهٔ نه

کهٔ عمر تېر ئې د ځوانئ شهٔ، زهٔ پرې ښهٔ پوهېږم
هغه مې اوس هم ګل ورینه ده، مني او کهٔ نه

عشق کهٔ ډېر کړم بندیوان لکه د عمر قېدي
خو زړهٔ مې ځوان، ځوانه مې مینه ده، مني او کهٔ نه

زړهٔ مې په هر ښکلي ورتلے شي حسن کور نهٔ یمه
دا جذبه توره نهٔ په سپینه ده، مني او کهٔ نه

ایازه ما ته کهٔ په هر ځنګه نظر را ګوري
خو ما ته اوس هم دا نیازبینه ده، مني او کهٔ نه

**

## غزل

اشنا تهٔ رانه لاړې ستا غمونه رانه نهٔ ځي
دا ستا دَ يادولو عادتونه رانه نهٔ ځي

نهٔ دې تپوس وكړهٔ نهٔ خبر دې ماله راكړهٔ
ګرانه بې تپوسه خو ځوك هم دَ چا نه نهٔ ځي

دې بدو حالاتو رانه ډېر رونه جدا كړل
دَ وينو خوشبويانې ئې اوس هم له ما نه نهٔ ځي

ډېر زيات مې كړوي دا ستا بې رحمه دې يادونه
اوچ مې شو چشمان اوس نور رودونه رانه نهٔ ځي

اياز فخر كوي په خپل كلتور په خپل تهذيب
پښتون يم پښتانهٔ مې عادوتونه رانه نهٔ ځي

***